


د ارواښاد نصیر الله مومند د لومړي تلین په یاد!

# کینه مه کوئ
# خپل نېټونه سم کړئ





لیکوال: شیخ الاسلام مفتي محمد تقي عثماني
ژباړن: سعدالله فطرت





**ځانګړنې:**

د کتاب نوم: **کينه مه کوئ، خپل ښېتونه سم کړئ**

ليکوال: شيخ الاسلام مفتي محمد تقي عثماني

ژباړن: سعد الله فطرت / ۰۷۷۴۵۹۲۴۲۱

ډيزاين/کمپوزچارې: عبدالهادي اثر

خپرندوی: مومند خپرندويه ټولنه - جلال آباد

برېښناليک: momand.books@gmail.com

چاپ کال: ۱۳۹۳ل / ۲۰۱۴م

چاپ شمېر: ۱۰۰۰

چاپوار: لومړی

چاپځای: مومند خپرندويې ټولنې تخنيکي څانګه





**د ترلاسه کولو پتې:**

عبدالمجيد مومند کتاب پلورنځی، مخابراتو څلور لارې - جلال آباد. اړيکې: ۰۷۰۰۲۲۲۱۲۱ / ۰۷۷۷۲۲۲۱۲۱

خوست: غرغښت کتاب پلورنځی او سباوون کتاب پلورنځی، ګرديز: علمي کتاب پلورنځی، حميد ګرد يزي مارکيټ، پکتيکا (شرنه): مجاهد کتاب پلورنځی / کابل: اصلاح و افکار کتاب پلورنځی، خيبر کتاب پلورنځی او مستقبل کتاب پلورنځی / هلمند: سيد جمال الدين کتاب پلورنځی / پکتيا: روحاني بابا کتاب پلورنځی / کندهار: هېواد کتاب پلورنځی.

# ډالۍ

خپل مشر ورور، شېر الله شهيد ته، چې په ورېوکوالي کې يې زده کړې ته هڅولم او همدا به يې ويل، ځان ورسوه، چې زموږ ستر ګې به درسره هسکې وي، ما د هغه په خبره ځان ورساوه، خو ده ونه ليدم او دا ارمان يې له ځان سره ګور ته يووړ.

وروره!

د بېلتانــــه درد دې هما غســــې مــــوږ ژړوي، درجې دې لوړې شه

سعدالله فطرت

# لیکلړ

## غواړمه چې ټوله دونیا مینه مینه شي

د اسلامي نړۍ ستر عالم، مفکر او څېړونکی مفتي محمد تقي عثماني صیب کتابونه ډېر لولم، په رښتیا سره چې دی یو ستر علمي او معنوي کدر دی او کتابونه یې ډېر څه له ځان سره لري د غه دواړه کتابونه چې ما ژباړلي یو یې (کینه) او دویم یې (خپل نیتونه سم کړئ) هغه موضوعات دي چې موږ په ورځني ژوند کې ډېر ورسره مخیږو مانا کینه زموږ د ټولو په زړونو کې پرته هغه ناروغي ده چې د درملنې په چل یې تراوسه نه پوی نه شو. که په نیکو کارونو کې یو له بل سره کینه وکړو یا ووایو چې کاش د غه نیک او ښه کار ما هم کړی وی بده نه ده دا ښه کینه ده خو که داسې کینه وکړو چې ووایو زما ګاونډي، خپلوان، ملګری، ورور یا بل کوم نړدې د کورنۍ غړی ولی دومره دونیادار شو، ولې یې موټر

واخیسته، کور یې ولې جوړ که دا یې ولې وکړل او داسې نورې خبرې دا هر څه هغه کینه ده چې موږ ورسره زوریږو او هم په ګناه کې راځو.

راځئ مخکې له دې چې د نورو مال دونیا او موټرې بنګلې وګورو زړه پرې وخورو یا یې کینه وکړو ولې دا نه وایو چې که هغه یې په دونیا او دولت خوشاله کړی زه یې په صخت، تعلیم او معنویت خوشاله کړی یم زه هم باید د الله ج شکر ادا کړم که چېرې موږ همداسې کینې کوو او همداسې مو نیتونه یو بل ته بد وي په خپلو کې سره ونه زغمو و نو ورځ به مو یوه له بلې بدیږي او د ښې ورځې خاوندان به نه شو.

حدیث شریف دی چې انما الاعمال بالنیات مانا ټول عملونه په نیتونو پورې تړلي دي او هر چاته به هغه څه ور رسیږي څه چې یې په زړه کې وي او څه یې چې په نیت کې وي. الله ج هر سړی په خپل نیت ساتي او نیتونه دي چې ښه او بد یې موږ ته را رسیږي.

دا زما خبرې وې تر دې زیاتې خبرې نه لرم نورې به د مفتي عثماني صیب په کتاب کې ولولئ.

یو یادونه اړینه بولم هغه دا چې د کتاب چاپ دا ځل هم مومند خپرندویې ټولنې په غاړه واخیست زه دوی ته د اوږده عمر غوښتونکی یم پښتو ژبې ته د مومند خپرندویې ټولنې کړي خدمتونه له هیچا پټ نه دي، ګران ورور فضل مولا او نجیب مومند د اروابناد نصیر مومند ورور چې اوس د خپرندویې ټولنې مسوولیت په غاړه لري دواړه دې الله ج دغه ستر خدمت ته ژوندي ګرندي لري.

د رحمن الله بهیر هنرمندو ګوتو ته خو الفاظ نشته خو سلامي ورته ضرور کوم ځکه چې زما ټولو کتابونو پښتی د دې کتاب په شمول او د نورو زرګونو کتابونو خوږې او دل افروزه پښتی د همدې بهیر په

هنرمندو او نازکو ګوتو جوړې شوي دي الله ج دې د بهیر د فن او هنر بهیر همداسې ښه لري دی سره له دې چې د ننګرهار پوهنتون عامه ادارې په پوهنځي کې زده کړیال دی زموږ سل او زر فرمایشه هم په سترګو مني د ده مینه او حوصله د منني او ستاینې وړ ده.

بس همدومره

ستاسو سعدالله فطرت

جلال اباد ښار، روښان مېنه خپل کور

د لیندۍ ۹ مه ۱۳۹۳ لمریز

## کينه يوه باطني ناروغي ده

څرنګه چې الله جل جلاله زموږ په ظاهري کړنو کې ځيني شيان فرض او واجب کړي دي او ځيني شيان يې ګناه ګرځولي دي په همدې توګه زموږ په باطني کړنو کې ډېرې کړنې فرض دي او ډېرې ګناه لري او حتى حرام دي ځان ترې بايد داسې وساتو لکه څومره چې له سترو ګناهونو څخه ځان ډډه کوو.

عن ابو هريره رضى الله عنه ان النبى صلى الله عليه وسلم قال اياكم والحسد ، فان الحسد ياكل الحسنات كما تاكل النار الحطب او قال العشب

(ابو داود ، كتاب الادب، باب فى الحسد ، حديث نمبر ۴۹۰۳ )

نن چې زه د کومې خطرناکې ناروغۍ په اړه خبرې کوم هغې ته کينه وايي او ما چې پورته کوم حديث ووايه رسول الله صلى الله عليه وسلم هم د دغې ناروغۍ په اړه ويلي دي

د پورتني حديث ژباړه داسې ده چې:

حضرت ابو هريره رضى الله عنه څخه روايت دى چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل له کينې څخه ځانونه وژغورئ ځکه کينه نيکي داسې خوري لکه اور چې لرګي يا وچ واښه خوري د راوي په دې کې شک دی چې رسول الله صلى الله عليه وسلم لرګی ښودلی و که وچ واښه يې ښودلي ول مانا څرنګه چې اور وچ لرګي يا وچو ښو ته ورننږدې کړې

سملاسي سوزي له منځه يې وړي همدارنګه که په کوم سړي کې د کينې
ناروغي وي نو ټولې نيکۍ يې ورځنې خوري

## د کينې اور مړ بليږي:

يو خو هغه اور دی چې ډېر ستر وي او په دقيقو کې هر څه له منځه وړي
يو هغه اور وي چې نرۍ نرۍ بليږي که دغه ډول اور په چا پورې شو نو په
يو ځل يې نه سوزوي بلکې په کراره کراره به بليږي او لږ لږ به يې خوري
تر هغې چې له ټولو لرګيو څخه سکاره جوړ شي. همدارنګه کينه يوه
ناروغي او يو داسې اور دی چې په کراره کراره بليږي د انسان ښېګڼې له
منځه وړي او انسان خبر هم نه وي چې زما نيکياني له منځه ځي
ځکه رسول الله صلی الله عليه وسلم له کينې څخه د ځان ژغورلو ډېر
تاکيد کړی دی.

## له کينې څخه ځان ساتل فرض دي:

خو که موږ چېرې خپلې ټولنې او چاپېريال ته فکر وکړو وبه ګورو چې دا
د کينې ناروغي د ټولنې په داخل کې پټه ده او ډېر لږ د خدای جل جلاله
بنده ګان به داسې وي چې له دغې ناروغۍ څخه خوندي او پاک وي.
له کينې ځان ساتل فرض دي خو يوه خبره دا ده چې زموږ تر اوسه دې ته
فکر هم نه دی چې موږ په دغه ناروغۍ اخته يوو، ياني له دې څخه د ځان
ساتلو لپآره چمتووالی ډېر اړين دی.
لومړی بايد ځان پر دې پوه کړو چې کينه په حقيقت کې څه شی دی؟ او
کوم ډولونه لري؟ لاملونه يې څه دي؟ درملنه يې څه ده؟ په دغو ځلورو

خبرو به رښا اچوو الله جل جلاله دې زموږ دغه خبرې د دغې ناوړه ناروغۍ د له منځه وړلو لامل وګرځوي.

## کینه یانې څه؟

کینه دې ته وايي چې د خپل مسلمان ورور په مال، دولت، شهرت، نعمت، شخصیت او هر څه د بل مسلمان خوا بدېږي او په خپل ورور یې دغه هر څه نه لوریږي یوازې ځانته یې خوښوي. دغه نعمتونه که مادي وي او یا په دین پورې تړلي وي خو چې دویم سړی یې وګوري په زړه کې یې اور بل شي او نیت یې بد شي چې دغه سړی ولې له دې نعمته برخمن دی، زړه کې یې دا خبره راګرځي چې که له ده څخه دا نعمتونه واخیستل شي ښه به وي، همدې ته کینه وايي.

د مثال په توګه الله جل جلاله چا ته مال دولت ورکړ، یا یې په سته روغ پیدا کړی، یا یې څوک له شهرت څخه برخمن کړی، یا یې چاته عزت ورکړ، یا یې علم ورکړی، اوس نو یو بل سړی دی هغه چې دا نور خلک ګوري زړه کې یې دا راګرځي چې دا نعمتونه ولې دغو خلکو ته ورکړل شوي دي؟ له ده څخه که دا نعمت واخیستل شي نو ډېره به ښه وي که لومړي سړی په کومه ستونزه کې ښکېلیږي یا کومه خبره ورته پیدا کېږي نو کینه کوونکی پرې سخت خوشالیږي. او که چېرته دغه پاک زړی او د سپېڅلي نیت څښتن پرمختګ وکړي نو کینه ګر پرې ډېر زوریږي چې دا ولې دومره مخکې ولاړ همدې ته کینه وايي.

اوس که د کینې حقیقت ته په کتو سره فکر وکړو نو پوه به شو چې کینه کوونکی په ریښتیا سره د الله جل جلاله په تقدیر نیوکه کوي چې الله جل جلاله دغه نعمت دې سړي ته ولې ورکړی دی؟ ما ته یې ولې نه دی راکړی؟ دا خو د الله جل جلاله پر پرېکړه نیوکه کوي، په هغه ذات ټیوکه

کوي چې په هر څه قادر دی او ورسره ورسره دا غوښتنه هم کوي چې که له دې سړي څخه په هره لاره چې وي دا نعمت واخیستل شي
رښه راتلل (مانا کوم شی چې بل چاته ورکړل شوی دی ماته دې هم راکړل شي) روا دي.
دلته په دې خبره ځان پوهول په کار دي ځیني وخت داسې هم کېږي چې نور خلک له یو نعمت څخه برخمن کېږي نو د یو بل سړي په زړه کې هم دا هیله راپیدا کېږي چې که زه هم له دغه نعمت څخه برخمن شم نو ښه به وي دې ته کینه نه وایي. بلکې دې ته (رښه) وایي په عربي کې ورته (غبطه) وایي.او ځیني وخت خلک دا توری په کینه بدلوي خو دې ته کینه نه وایي.
د مثال په توګه د یو چا د ښایسته کور په لیدلو سره دې په زړه کې دا راوګرځي چې زما هم داسې کور وای یا لکه څرنګه چې هغه پلانکی دنده لري که زما هم د هغه په څېر دنده وای، یا د یو عالم انسان په لیدو دې زړه کې دا راوګرځي چې څرنګه علم الله جل جلاله هغه ته ورکړی دی که ماته یې هم راکړي دا کینه نه ده بلکې رښه ده دا هیڅ ګناه نه لري خو که چېرې مو په زړه کې دا راوګرځېدل چې دا نعمت له پلانکي څخه واخیستل شي نو ښه به وي دا کینه ده.

## د کینې درې درجې:

د کینې درې درجې دي لومړۍ درجه یې دا ده چې په زړه کې مو دا را وګرځي کاشکې د هغه سړي په څېر نعمت ماته هم راکړل شي، او له هغه سره دې هم پاتې شي دا کومه بده او کینه کښه خبره نه ده خو که داسې وو ایو چې له هغه څخه دې واخیستل شي او ماته دې راکړل شي دا نو د کینې لومړۍ درجه ده.

د کینې دویمه درجه دا ده چې له کوم نعمت څخه چې نور برخمن شوي دي له هغوی څخه دې واخیستل شي او ماته دې راکړل شي دلته په لومړي ګام کې دا غوښتنه درلودل چې له هغه بل څخه واخیستل شي او په دویم ګام کې دا غوښتنه چې ماته دې راکړل شي دا د کینې دویمه درجه ده.

د کینې دریمه درجه دا ده چې په دا سئ وو ایاست له هغه سړي څخه دې نه یوازې دا چې دغه واړه نعمتونه واخیستل شي ورسره ورسره دې هغه ټول امتیازات او منصب هم واخیستل شي چې دی یې له امله دغه ځای ته رسېدلی دی دا هرڅه باید له ده څخه واخیستل شي یانې هدف مو ترې دا وي چې له هغه څخه دې واخیستل شي ماته که راکول کېږي یا نه پروا یې نه راځي. دا د کینې ترټولو خرابه، ذلیله او خبیثه درجه ده الله جل جلاله دې موږ ټول له دې څخه وساتي.

## ترټولو لومړی کینه کوونکی:

تر ټولو لومړی کینه کوونکی ابلیس دی کله چې الله جل جلاله حضرت ادم علیه السلام پیدا کړ ویې وفرمایل چې زه به ده ته د ځمکې په سره خلافت ورکوم دی به د ځمکې په سر زما خلیفه وي. او بیا یې حضرت ادم علیه السلام ته دغه مقام ورکړ پرښتو ته یې امر وکړ چې حضرت ادم علیه السلام ته سجده وکړئ د دې امر په اورېدو سره ابلیس سم وسوځېده چې هغه ته دومره ستر مقام ورکړل شو ماته رانه کړل شو او اوس به لا سجده هم ورته کوم هماغه وه چې له سجدې کولو څخه یې انکار وکړ، لنډه دا چې تر ټولو لومړی کینه کوونکی شیطان دی او ترټولو لومړی غرور کوونکی هم شیطان دی.

## د کینې کولو پایله:

د کینې پایله خامخا وي مانا له چا سره چې کینه کېږي که هغه ته کوم تکلیف رسیږي یا په کوم غم کې راګېریږي نو کینه کوونکی د هغه په غم او تکلیف ډېر خوښیږي که هغه پرمختګ کوي یا له کوم نعمت څخه برخمن کېږي نو په دې سره کینه کوونکی خفه کېږي د نورو په تکلیفونو خوښي کولو ته په عربي ژبه کې ((شماتت)) ویل کېږي دا هم د کینې یو ډول دی د قرانکریم په ډېرو ځایونو کې د دې غندنه راغلې ده قران کریم فرمايي:

أَمْ يَحْسُدُونَ النَّاسَ عَلَىٰ مَآ آتَاهُمُ اللَّهُ مِن فَضْلِهِ

[النساء/۵۴]

## د کینې دوه لامله دي:

د کینې د ناروغۍ لامل به څه شی وي؟ دا ناروغي ولې راپیدا کېږي؟ د دې دوه لامله وي:

یو لامل یې له مادیاتو، منصب او دولت سره مینه ده ځکه خو انسان تل همدا غواړي چې زما مرتبه دې لوړه وي زه دې په لوړ موقف کې اوسم اوس که کوم بل سړی ترې مخکې کېږي نو دی د هغه د راغورځولو فکر کوي.

د دې ناروغۍ دویم لامل بغض او کینه ده د مثال په توګه د چا په زړه کې بغض او کینه راپیدا کېږي او په پایله کې د بل په خوښۍ خفه کېږي په خفګان یې خوشالېږي کله چې د چا په زړه کې دا دوه خبرې وي نو خامخا کینه منځته راځي.

## کینه په دونیا او اخرت کې بربادوونکې ده:

کینه یوه داسې ناروغي ده چې انسان په اخرت کې هم له تباهۍ سره مخ کوي او په دونیا کې هم د انسان لپاره وژونکې ده. د دې له امله دنیا او اخرت دواړه خرابیږي. نو که چیرې کوم سړی له بل سره کینه کوي نو تل به په ستونزو کې راګیر وي ځکه کله چې دی کوم بل سړی د پرمختګ په حال کې ګوري نو ورته ځوریږي او سخت په تکلیف کې وي چې له امله به یې روغتیایي وضعه ورځ تربلې پسې خرابیږي.

## کینه ګر به د کینې په اور کې سوځي:

د عربي یو شعر دی چې مانا یې دا ده د کینې مثال د اور په څېر دی او د اور ځانګړنه دا ده چې کله ورته کوم شی د خوراک لپاره پیدا شي نو اور به یې خوري. د مثال په ډول اورته د خوراک لپاره لرګی پیدا شو نو دغه اور به دا لرګی خوري خو کله چې لرګی له منځه لاړ شي نو د اور یوه برخه به د اور د بلې برخې په خوراک پیل وکړي. تر دې پورې چې هغه اور به هم له منځه لاړ شي. همدا ډول د کینې اور هم دی مانا کینه کوونکی خو به اول د نورو ته د زیان اړولو او خرابولو کوښښ کوي خو کله چې نورو ته زیان نه شي اړولی نو بیا په خپله د کینې په اور کې سوځي او له منځه ځي.

## د کینې درملنه:

د کینې درملنه دا ده چې انسان داسې فکر وکړي چې په دې ویر کاینات کې الله جل جلاله د خپلو ځانګړو حکمتونو او مصلحتونو له مخې د انسانانو ترمنځ د نعمتونو وېش کړی دی. چاته یې د روغتیا نعمت ورکړی دی، چاته یې مال دولت ورکړی دی، چاته یې درنښت ورکړی

دی، چاته یې ښکلا ورکړې ده، چاته یې ارام او سکون ورکړی دی لنډه دا چې په دې نړۍ کې هیڅ داسې انسان نشته چې له یو نه یو نعمت څخه نه وي برخمن او یا په کوم تکلیف کې نه وي راګیر.

### درې نړۍ:

الله جل جلاله په دې کایناتو کې درې نړۍ پیدا کړي دي یوه هغه ده چې په هغې کې هر وخت سکون وي، ستونزې په کې بیخي نشته د غم او تکلیف نوم او نښان هم شتون نه لري هغې ته جنت وایي الله جل جلاله دې موږ ټول هلته ور ولي.
هلته بس سکون دی کراري ده خوندونه دي، خوښۍ دي او یوه نړۍ د هغې په مقابل کې ده چې هلته هر وخت ستونزې وي هر وخت غم وي، مصیبتونه وي د خوښۍ او سکون هلته بیخي نوم او نښان نشته دی هغې ته دوزخ وایي الله جل جلاله دې موږ ټول ترې وساتي. امین
دریمه نړۍ له دې دواړو څخه جوړه ده چې هم په کې خوښي شته هم په کې غم، سکون هم شته او ستونزې هم او هغې ته دونیا وایي چې موږ او تاسو په کې اوسېږو. په دې نړۍ کې به تاسو هیڅوک داسې پیدا نه کړئ چې ووایي زه په ټول ژوند کې له ستونزو سره نه یم مخ شوی او نه به داسې سړی پیدا کړئ چې ووایي ما هیڅکله کراره ورځ او خوشالي نده لیدلې. دلته له هرې خوښۍ د غم اغزي راتاو دي او په هره ستونزه کې یو سکون پټ دی نه د دې دنیا ستونزې نکه دي او نه یې سکون نکه دی.

## څوک په رښتيا د سکون احساس کوي؟

په هر صورت الله جل جلاله په خپل حکمت او مصلحت سره دا تولنه نړۍ پيدا کړې ده. او بيا يې دلته چاته له خپلو پرېمانه خزانو څخه يو نعمت ورکړی او چاته بل. که چاته يې د پيسو نعمت ورکړی نو څوک يې د روغتيا په نعمت خوشاله کړی دی. اوس د مال او پيسو درلودونکی که دا کينه کوي چې هغه بل سړي ته يې ولې روغ ستېه ورکړې ده؟ او که د روغې ستې څښتن دا کينه کوي چې هغه بل ته يې ولې مال دولت او پيسې ورکړي دي؟ خو که رښتيا ته وګورو نو دا د نصيبونو پرېکړې دي او هيڅوک د بل انسان په اړه دا نه شي ويلی چې کوم انسان په دې نړۍ کې ډېر خوشاله دی.

کله نا کله موږ ګورو چې د يو سړي ډېرې فابريکې وي، دنګې ماڼۍ يې ولاړې وي، موټرې يې وي، مزدوران يې ګرځي او د دونيا د عيش و عشرت هر څه ورسره شته دی او بل پلو ته يو مزدور دی چې له سهاره تر بيګا پورې په دياړۍ پسې ګرځي او په ډېر مشکل سره خپلو بچو ته يو کپ ډوډۍ پيدا کوي. اوس که دغه مزدور دا بل دنيا داره سړی وګوري نو همداسې فکر به کوي چې دی خو په دنيا کې له هر ډول نعمتونو څخه برخمن دی.

خو که له دې سره سره د دې دواړو کورني ژوند ته هم وګورو نو پوه به شو چې هغه سړي چې د مزدورانو شمېر يې نشته دی، بې شمېره موټرې يې دي، ښې ډېرې پيسې لري او هر څه يې ډېر تېر دی خو کورنی وضعيت يې داسې دی چې د شپې تر هغې نه شي ويده کېدای تر څو چې د خوب ګولۍ ونه خوري.

او خوراک يې داسې دی چې په دسترخوان بېلابېل نعمتونه ورته پراته دي خو دغه خان صاحب په کې يوازې يو ډول ساده خواړه خوړلی شي او

نور له هرڅه پرهېز دی بېلابېل ډول مېوې ورته پرتې دي خو د ده په معده کې زخم دی او ډاکټر منعه کړی دی چې دا او هاغه شی به نه خوري چې ناروغي ته دې لا پسې زیاتوي اوس ټول خوراکونه او نعمتونه ده ته هېڅ دی.

تاسو وواياست هغه سړی چې هر ډول نعمتونو څخه برخمن دی او هر څه بنه ډېر تېر لري خو خوبونه پرې حرام دي او له خوراکه هم بې برخې دی او يو مزدور چې د ورځې اته ساعته سخت کار کولو وروسته سابه سوکړک له بنې لوږې وروسته بنه په خوند سره خوري او کله چې د خوب لپاره بسترې ته لاړ شي نو سملاسي خوب ورځي اته یا لس ساعته بنه خوب کوي او بیا پورته کېږي.

اوس وواياست په دې دواړو کې څوک په سکون کې دی؟

معلومه خبره ده چې که په دقت سره دې موضوع ته وګورو نو وبه وينو چې الله جل جلاله لومړي سړي ته هرڅه ډېر تېر ورکړي دي خو رښتينی سکون يې دويم سړي ته ور په برخه کړی دی. دا ټولې د الله جل جلاله د حکمت پرېکړې دي.

## روزي يو نعمت او خوړل يې بل نعمت:

زما د پلار دې الله جل جلاله مرتبې لوړې کړي هغه به ويل له ډوډۍ خوړلو وروسته چې دا کومه دعا ويل کېږي:

الحمد لله الذی اطعمنی هذا ورزقنه من غير حول منی ولاقوة، غفر له ما تقدم من ذنبه (ترمذي شريف، ابواب الدعوات، باب مایقول اذا فرغ من الطعام، د حديث شمېره ۳۵۲۳)

یعنې د الله تعالی ډېر شکر دی چې ماته يې ډوډۍ راکړه او ماته يې دا روزي پرته زما له کوښښ او ځواک څخه راکړه. کوم سړی چې له ډوډۍ

وروسته دا دعا ولولي نو الله جل جلاله د هغه ټول پخواني واړه ګناهونه ببښي.

بیا مې پلار وویل په دې روایت کې رسول الله صلی الله علیه وسلم دوه ټکي جلا جلا یاد کړي دي، لومړی (رزقنیه) او دویم (اطعمنی) مانا الله جل جلاله ماته روزي راکړه او دا ډوډۍ یې رابانديې وخوړه. اوس پوښتنه دا راولاړېږي چې کله د دواړو ټکو مانا یو ډول ده یعنې روزي یې راکړه او ډوډۍ یې رابانديې وخوړه نو بیا یې دواړه ولې جلا جلا راوړي دي؟

د یوه ټکي یادولو بسنه کوله، بیا یې په خپله ځواب ووایه چې دواړه خبرې بېلې بېلې دي، ځکه چې د روزي ترلاسه کول یو خپلواک نعمت دی او خوړل یې دویم خپلواک نعمت دی. ځینې وخت د روزۍ د ترلاسه کولو نعمت موجود وي مانا په کور کې ډول ډول معیاري خواړه پاخه وي او هر ډول مېوې هم وي خو ولړه نه وي، معده خرابه وي او یا ډاکټر یې له خوړلو پرهېز راکړی وي. اوس په داسې حالت کې (رزقنا) شته دی خو (اطعمنا) نشته دی. الله جل جلاله روزي راکړې ده خو د خوړلو او هضمولو زور یې نه دی راکړی. په هر صورت په دې کې د الله جل جلاله حکمتونه او مصلحتونه شته دي چې چاته څه ډول نعمت ورپه برخه کړي.

## د الله جل جلاله د حکمت پرېکړې:

د کینې درملنه دا ده چې کینه کوونکی باید داسې فکر وکړي بل سړي ته چې الله جل جلاله کوم ستر نعمت ورکړی دی د هغې له امله زما په زړه کې غم راپیدا کېږي نو څومره نعمتونه بیا الله جل جلاله تاته هم درکړي دي او هغه بل سړي ته یې نه دي ورکړي. کېدای شي الله جل جلاله له هغه

نه تاته ښه صحت در کړی وي، کېدای شي الله جل جلاله له هغه نه یې تاته ښه ښکلا در کړې وي یا یې کوم بل نعمت در کړی وي او هغه بیا ستا په خبر نه وي په ټولو دونیاوي نعمتونو کې د الله جل جلاله حکمت او مصلحت نغښتی وي چې انسان نه پرې پوهېږي که د غه ډول فکر وکړو نو بیا به مو د کینې ناروغي کمه شي.

## د اردو یو متل:

په اردو کې دا یو متل مشهور دی چې الله دې پـک تـه نوکان نه ورکوي دا ډېر له حکمته ډک متل دی، مانا یې دا ده چې که چېرې الله جل جلاله تاته پیسې او دارایي درکړې وای نو تا به څه نخرې کړې وای او په کوم عذاب کې به دې ځان راګېر کړی وی. څومره په بې قدرۍ به دې دا پیسې لګولی او څه حال به دې وی. اوس که الله جل جلاله تاته دا نعمتونه نه دي درکړي نو د یو مصلحت له مخې یې نه دي درکړي. په همدې اړه قران کریم فرمایي:

وَلَا تَتَمَنَّوْا مَا فَضَّلَ اللّٰهُ بِهِ بَعْضَكُمْ عَلٰى بَعْضٍ

[النساء: ۳۲]

## تاسو د دغه شیانو غوښتنه مه ولې کوئ؟

د دې لپاره چې تاسو نه پوهېږئ که الله جل جلاله تاسو ته دغه نعمتونه درکړي نو تـه به څه فسـادونه وکړې تاسو به کیسې اوربدلي وي چې پلانکي سړي پلانکی نعمت غوښته خو کله چې یې ترلاسه کړ نو د دې لپآره چې ورته ګټور تمام شي په زیان یې تمام شو. د دې لپاره تر ټولو د مخه په دې فکر په کار دی چې دا کوم نعمت چې دې بل سړي ته ورکړل

شوی دی او زه پرې سوزم، دا په رښتیا سره د الله جل جلاله په تقدیر نیو که ده. کېدای شي تر دې تاسو ستر نعمت ولرئ چې له هغه سره به نه وي.

## د خپلو نعمتونو په لور وګورئ:

دا ټولې خبرې له دې را ولاړېږي چې انسان تل د خپل ځان پر ځای نورو ته ګوري. په خپله چې دی له کومو نعمتونو څخه برخمن دی هغې ته خو نه ګوري او نه پرې شکر وباسي د نورو نعمتونو ته یې ستر ګې نیولې وي. همدارنګه خپلو عیبونو ته هم نه ګوري خو د نورو خلکو عیبونه لټوي. وایي خپل عیب د ولو منځ دی چا ته نه ښکاري. که چېرې انسان د الله جل جلاله لوري ورکړل شوي نعمتونه هر وخت یاد کړي نو بیا دې نورو ته په زړه کې کینه نه راولي که په هر حالت کې وي بیا هم الله جل جلاله پر تاسو د نعمتونو داسې باران کړی دی چې که تاسو د هغې په اړه فکر وکړ نو د نورو خلکو په نعمتونو به درته هیڅ ډول کینه ونه درېږي.

## تل له ځانه ټیټو خلکو ته ګورئ:

نن سبا زموږ په ټولنه کې ډېری خلک د نورو خلکو په کارونو کې ډېر کار لري. د مثال په توګه پلانکی سړی پیسې له کومه کوي؟ له کومه ځایه ورته راځي؟ دا کور یې څنګه جوړ کړ؟ دا څه رقم موټر یې اخیستی دی؟ د هرې خبرې جاج به اخلي او بیا د دغه ډول تفتیش او څېړنې پایله دا شي چې کله په دې راز پوی شي نو بیا یې پرې کینه نه راځي دغه وخت کې بیا ورته هغه مشهوره مقوله یادول اړین دي چې مخکې مو یاده کړه چې:

د دنيا په کارونو کې هر وخت له ځانه ټيټو خلکو ته ګورئ او د دين په کارونو کې تل له ځانه پورته خلکو ته ګورئ.

## حضرت عبدالله بن مبارک او سکون:

حضرت عبدالله بن مبارک رحمة الله عليه فرمايي چې زه ښايسته موده د مالدارو په سيمه کې اوسېدم او له هغوی سره مې ناسته پاسته درلوده هغه مهال زه ډېر زيات خفه وم، ځکه چې هر څوک مې هم کتل نو کالي به يې له ما ښه ول، د هغوی د سورلۍ وسيله به له ما ښه وه، د هغوی کور به زما له کوره ښه و. بالاخره هر وخت به راسره دا غم و چې له هغه بل سره خو دا هر څه نعمتونه شته او له ماسره نشته دی نو زه تر ټولو زيات غمجن او بېوزله سړی يم.

بيا زه يو داسې ځای ته د اوسېدو لپاره لاړم چې هلته ټول غريبانان او ټيټ خلک اوسېدل او له هغوی سره مې ناسته پاسته پيل کړه. بيا نو زه ډېر په سکون کې شوم په داسې حال کې چې دلته معامله له هغه ځايه برعکس وه مانا دلته به زما د اغوستلو لباس له نورو خلکو ښه و.زما د سورلۍ وسيله تر بل هر چا ښه وه، زما کور به د هغوی له کوره ښه و، کله چې مې دا هرڅه وکتل نو بيا په رښتيا سره ډېر ډاډه شوم.

## غوښتنې پای ته نه رسېږي:

په ياد ولرئ کوم سړی چې په دونيا ټولولو کې څومره مخکې هم لاړ شي بيا هم نه مړېږي. تاسو په دنيا کې تر ټولو مالداره سړي څخه وپوښتئ چې ايا ته هر څه لرې؟ اوس خو تا ته هيڅ هم نه دي په کار؟ نو هغه به درته په ځواب کې ووايي چې زه خو لا نور هم غواړم. هغه هم په دې فکر کې

دی چې زما دارایي نوره هم ډېره شي. متنبي د عربي ژبې ستر شاعر دی هغه د نړۍ په اړه ډېره له حکمت ډکه خبره کړې ده وايي:

ژباړه: په دې نړۍ کې د هیچا ګېډه هم نه ده مړه شوې کله چې ستاسو یوه غوښتنه لا نه وي پوره شوي نو له هغې وروسته به سملاسي بله راپیدا کیږي. هره یوه غوښتنه یوه بله غوښتنه راز یږوي او هر حاجت یو نوی حاجت راز یږوي.

## دا د الله جل جلاله وېش دی:

ځو مره به کینه وکړئ؟ تر کومه به د نورو په نعمتونو خفه کیږئ او زړه به خورئ؟ ځکه له دې خبرې سره خو به تاسو خامخا مخبږئ چې یو څوک به له تاسو څخه په یو نعمت کې ښه وي او بل سړی به په بل کې له تاسو څخه ښه وي خو موږ تاسو باید دې ته فکر وکړو چې دا ټول د الله جل جلاله وېش دی. او الله جل جلاله په خپل حکمت او مصلحت سره دغه وېش کړی دی. موږ تاسو په دې حکمت او مصلحت نه پوهېږو. ځکه چې موږ تاسو په یوه محدوده دایره کې فکر کوو.

ستاسو عقل محدود دی ستاسو د فکر کولو دایره محدوده ده، تاسو په یوه محدوده دایره کې فکر کوئ. خو د الله جل جلاله حکمت ډېر ستر دی هماغه ذات دغه پرېکړې کوي چې چاته کوم شی ورکړي؟ او چاته څه شی ورنکړي؟ بس که همداسې فکر وکړو نو د کینې ماده به بیخي له منځه لاړه شي او د کینې ناورغي به مو هم کمه شي.

## د کینې دویمه درملنه:

د کینې د ناروغۍ دویمه درملنه دا ده چې کینه کوونکی باید له ځان سره فکر وکړي او ووایي ښه زما دا نه خوښیږي چې بل مسلمان وروړ سره مې مالي امکانات ډېر وي الله جل جلاله هر څه ډېر تېر ورکړي وي او د هغه امکاناتو ته په کتو زما په زړه کې کینه راولاړیږي دا ماته ګټه نه شي رسولی خو زما مقابل لوری چې زه ورسره په زړه کې کینه ساتم هغه لا پسې ښه کیږي دونیا به یې هم تر ما ښه وي او په اخرت کې به هم تر ما ښه وي.

کینه کوونکی تل په زیان کې دی ځکه دی تل د نورو شتمنیو ته زوریږي او زړه یې خفه وي دا چې دی دغه شتمنۍ او امکانات نه شي ترلاسه کولی نو ښکاره خبره ده ترڅو چې ژوندی وي ورځ به یې تر بلې خرابیږي ښه اوس هغه څوک چې دا هرڅه لري د هغه دونیا خو ځکه ښه ده چې ډېر تېر لري او سات یې تېر دی او په اخرت کې یې ګټه دا شوه څومره چې خلک له ده سره زړه کې کینه ساتي هماغومره د ده په عملنامه کې ښېګنې زیاتیږي او څرنګه چې هغه مظلوم دی نو په اخرت کې به یې هم مرتبه لوړه وي.

د کینې ځانګړنه دا ده چې دا انسان غیبت، عیب لټونه او بې شمېره نورو ګناهونو ته چمتو کوي او پایله یې دا کیږي چې په خپله د کینه ګر ښېګنې د مقابل لوري عملنامې ته لېږل کیږي همدا راز کله چې ته د هغه غیبت کوې یا ورته ښېرا کوې نو ستا ښېګنې د هغه عملنامې ته ورلېږل کیږي لنډه دا چې ته څومره کینه کوي داسې مانا لري چې ته خپلې ښېګنې په یو پاکټ کې بندوي او هغه بل سړي ته یې لیږې اوس که یو سړي ټول عمر کینه کوي نو هغه به خپلې ټولې ښېګنې شمېري او د هغه بل سړي په عملنامه کې به یې ور اچوي

## د یوه بزرګ کیسه:

د یوه بزرګ کیسه ده وايي یو ځل چا ورته وویل بزرګ صاحبه هغه پلانکي تا پسې ډېر بد رد ویل، نوموړي چې دا واورېدل نو غلی شو هیڅ ځواب یې ور نه کړ. کله چې مجلس پای ته ورسېده نو کور ته لاړه او هغه سړي چې په دې پسې یې بد رد ویلي ول هغه ته یې یوه ښه ډالی چمتو کړه او د هغه کور ته یې ورولېږله.
خلکو ورته وویل صیبه هغه خو په تا پسې بد رد ویل او تا هغه ته ډالی ولېږله؟ بزرګ ځواب ورکړ چې هغه پر ما احسان کړی دی چې په ما پسې یې بدې خبرې کړي دي ځکه زما ښېګنې یې لا پسې زیاتې کړې اوس خو زه هم باید د هغه د احسان په بدل کې څه ورته ورکړم ځکه هغه زما د اخرت ښېګنې لا پسې زیاتې کړې زه باید هغه ته په دونیا کې پر یوې ډالۍ ونازوم.

## د امام ابوحنیفه له غیبت څخه ځان ژغورنه:

داخبره ډېره مشهوره ده چې د حضرت امام ابو حنیفه په مجلس کې به هیچا د بل سړي غیبت نه شو کولی. ځکه چې هغه به نه غیبت کولو او نه به یې غیبت اورېدلو. د هغه به مجلس کې به بیخي غیبت نه وه. یوه ورځ امام ابوحنیفه د خپلو شاګردانو پر وړاندې د غیبت او کینه کوونکي بدګنې بیانولې ویې ویل چې له غیبت سره ښېګنې له منځه ځي. همدارنګه ویې فرمایل غیبت یو داسې شی دی چې غیبت کوونکی خپلې ښېګنې هغه چاته ورلېږي چې غیبت یې کوي ځکه نو زه هیڅکله هم غیبت نه کوما و که کله مې کاوه هم نو د خپل مور او پلار غیبت به کوم ځکه که د غیبت له امله زما کومې ښېګنې له ما څخه لاړې هم شي

نو زما د مور او پلار عملنامې ته به لاړې شي مانا د کوهي خته به په کوهي ولګول شي او بل چاته به په لاس ور نه شي.
نغوته تو له دې خبرې ته ده چې غیبت کوونکی او کینه ګر په خپل زړه کې نورو ته ډېر بد غواړي خو هغه نه پوهېږي چې په حقیقت کې هغه بل کس ته ګټه رسوي هم په دنیا کې او هم په اخرت کې او خپل ځان ته په زوره زیان اړوي ځکه نو غیبت کول او کینه کول دواړه ډېر احمقانه کارونه دي.

## د امام ابو حنیفه یوه بله کیسه:

حضرت سفیان ثوري رحمة الله علیه د امام ابو حنیفه رحمة الله علیه هم دوره دی دواړه په یوه دوره کې تېر شوي دي او دواړو په خپلو خپلو سیمو کې تدریس کاوه. یوه ورځ له حضرت سفیان ثوري رحمة الله علیه څخه چا وپوښتل چې د امام ابو حنیفه رحمة الله علیه په اړه ستا څه فکر دی؟ حضرت سفیان ثوري رحمة الله علیه ورته وفرمایل چې هغه ډېر بخیل سړی دی، پوښتنه کوونکي ورته وویل چې موږ خو د هغه په اړه اورېدلي دي چې هغه ډېر سخي سړی دی. حضرت سفیان ثوري رحمة الله علیه وفرمایل چې هغه دومره بخیل دی چې خپلې ښېګنې هیچا ته نه ورکوي او د نورو خلکو څخه ښېګنې اخلي. هغه داسې چې خلک د هغه ډېر غیبت کوي او د هغه بدګنې بیانوي چې له امله یې د خلکو ښېګنې د هغه په عملنامه کې لیکل کېږي او په خپله خو هغه نه غیبت اوري او نه غیبت کوي ځکه نو خپلې ښېګنې نورو خلکو ته ورکولو ته چمتو نه دی. لنډه دا چې د اخرت په لحاظ له هغه څخه ډېر بخیل سړی نشته

## رښتینی مفلس څوک دی؟

په حدیث شریف کې راغلي دي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم له صحابه کرامو څخه پوښتنه وکړه چې وواياست رښتيني مفلس څوک دی؟ صحابه کرامو وويل چې مفلس هغه څوک دی چې پيسې ورسره نه وي، رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته وفرمايل چې نه دا رښتيني مفلس نه دی بلکې رښتيني مفلس هغه څوک دی چې له دې دنيا څخه ځان سره ډېر لمونځونه، ډېر ذکرونه، ډېرې روژې، ډېرې ښېګڼې، يوسي خو کله چې د قيامت په ورځ الله جل جلاله ته د حساب کتاب لپاره حاضر شي نو هلته به ډېر خلک سره راټول وي يو به وايي چې ده زما پلانکی حق د پښو لاندې کړی و، دويم به وايي چې ده زما پلانکی حق له منځه وړی و، درېيم به وايي چې ده زما په پلانکي حق ګېډه اچولې وه. اوس هلته خو به روپۍ نه وي چې دی يې هغوی ته ورکړي او حق يې ادا شي. د هغې دنيا روپۍ خو ښېګڼې دي نو الله جل جلاله به امر وکړي چې دې خلکو ته د هغه حق په بدل کې د دې سړي ښېګڼې ورکړئ، اوس به نو يو سړی د ده روژې واخلي، بل به يې لمونځونه واخلي، بل به يې ذکرونه واخلي او په خپله مخه به ځي په دې ډول به د دې سړي ټولې ښېګڼې ختمې شي خو د خلکو حقونه به ادا نه شي.نو الله جل جلاله به امر وکړي چې د حق د څښتنانو ګناهونه د ده په عملنامه کې واچوئ چې د هغوی حقوق ادا شي پايله به يې دا شي کله چې دی راغلی و ټوله عملنامه يې له ښېګڼو څخه ډکه وه او اوس بېرته نه يوازې دا چې تش لاس روان دی بلکې د ګناهونو پېټې يې هم له ځان سره روان کړی دی. په رښتيا سره دا مفلس دی.

په هر حال کينې سره داسې ښېګڼې له منځه ځي.

(ترمذي، ابو اب الصفة القیامته، باب ما جاء فی شان الحساب، حدیث ۲۵۳۳)
که الله جل جلاله یو چاته په خپل فضل سره د ائیني په څېر سپېځلی زړه ورکړي چې نه په کې کینه وي، نه په کې بغض وي، نه په کې غیبت وي، که څه هم نور یې په زړه کې نفلونه، ذکرونه، تلاوت نه وي خو زړه یې د ائینې په څېر وي نو الله جل جلاله به د ده مرتبه دومره لوړه کړي چې هیڅ حد به یې نه وي.

## د جنت زېری:

حضرت عبد الله بن عمرو بن العاص رضی الله عنه فرمایي چې یو ځل موږ له رسول الله صلی الله علیه وسلم سره په مسجد نبوي کې ناست و، نو رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې اوس کوم سړی مسجد نبوي ته له دې لوري را داخل شي هغه به جنتي وي. موږ چې هغه لوري ستر ګې ور پورته کړې نو له لږ ځنډ وروسته یو سړی مسجد نبوي ته په داسې حال کې راننووت چې له څېرې نه یې د اودس اوبه څڅېدلې او په چپ لاس کې یې څپلکې نیولې وې زموږ په زړه کې هم دا غوښتنه راپیدا شوه چې کاش موږ هم د ده په څېر وي ځکه چې رسول الله صلی الله علیه وسلم پرې د جنت زېری وکړ. حضرت عبد الله بن عمر بن العاص رضی الله عنه فرمایي چې کله مجلس پای ته ورسېده نو زما په زړه کې دا فکر راپیدا شو چې زه باید دا سړی له نږدې څخه وګورم چې داسې کوم عمل دی چې دا سړی یې کوي او رسول الله صلی الله علیه وسلم پرې د جنتي زېری هم وکړ. څرنګه چې هغه کور ته روان شو نو زه هم ورپسې غلی غلی شاته روان وم او په لاره کې مې ورته وویل چې زه دوه درې ورځې ستاسو په کور کې تېرول غوارم هغه راته اجازه راکړه، او زه د

هغوی کور ته لاړم. کله چې شپه شوه او بسترې ته لاړم نو ټوله شپه په بستره کې ویښ ناست وم تر څو دا وګورم چې د شپې هغه پاڅېږي څه شی کوي.
خو ټوله شپه تېره شوه هغه بیخي راپورته نه شو ټوله شپه ویده وه، د تهجد لمونځ یې هم ونه کړ، سهار مهال پاڅېده. له دې وروسته هم ما په ټوله ورځ کې په هغه کې څه داسې ځانګړی کار ونه لیده چې ده ترسره کړ.(نه نفلونه، نه ذکر، نه تسبیح، نه تلاوت) بس خو چې کله به د لمانځه وخت راغی نو جومات ته به د لمانځه ادا کولو لپاره لاړ. ما چې دوه درې ورځې تېرې کړې او د هغه کوم ځانګړی عمل مې ونه لیده نو ورته کړه مې چې رښتیا خبره خو دا ده چې رسول الله صلی الله علیه وسلم تاته د جنت زېری در کړ چې ته جنتي یې، زه د دې لپاره راغلم ترڅو ستا هغه عمل وګورم چې له امله یې الله جل جلاله تاته دومره ستر مقام درکړی دی.
خو ما له تاسره دوه درې ورځې تېرې کړې او ستا کوم ځانګړی عمل مې تر سترګو نه شو. یوازې فرض او واجب ترسره کوې او خپل عادي ژوند تېروې. هغه راته کړه چې که رسول الله صلی الله علیه وسلم ماته دا زېری راکړی وي نو دا زما لپاره ستر نعمت دی زه کوم ځانګړی عمل نه کوم او نه ډېر نفلونه کوم، خو یوه خبره ده هغه دا چې تراوسه پورې زما په زړه کې د چا لپاره کینه نه ده راګرځېدلې.
کېدای شي له دې امله الله جل جلاله زه له دومره ستر زېري څخه برخمن کړی یم. په ځینو روایتونو کې راغلي دي چې دا سړی حضرت سعد بن وقاص و چې له عشره مبشره صحابه وو څخه و.

## د هغه ګټه زما زیان:

تاسو ولیدل چې د دغه سړي په عملونو کې نقلونه او ذکرونه ول بلکې یو ازې زړه یې له کینې څخه پاک و. خپل زړه کې یې نورو خلکو ته کینه نه وه ساتلې او د ائینې په څېر یې سپېڅلی ساتلی و. که چېرې کینه ګر سړی فکر وکړي چې زه له چا سره کینه کوم د هغه په کې ګټه ده او زما په کې زیان دی نو له دې سره به یې د کینې ناروغي لږه کمه شي

## د کینې درییمه درملنه:

څرنګه چې ما مخکې هم وویل چې د کینې بنسټ د دونیا او مافیها سره مینه ده. نو د کینې دریيمه درملنه دا ده چې سړی له خپل زړه څخه د دونیا مینه او محبت وباسي ځکه چې د ټولو ناروغیو جرړې له دونیا سره مینه ده. او له زړه نه د دغې مینې د ویستلو لاره دا ده چې سړی دا فکر وکړي دا دونیا د څو ورځو ده. هر وخت چې وي سترګې به مو پټې وي د انسان لپاره به د ژغورنې بله لاره نه وي. د دونیا خوندونه، نعمتونه، پیسې، شهرت، عزت دا هر څه تر هغې دي تر کومه چې ژوندی وي خو کله چې سترګې پټې شوې دا هر څه لاړل تر دې وروسته به بیا د انسان لپاره د ژغورنې هیڅ لاره نه وي

## د کینې دوه ډولونه:

یوه بله خبره هم واورئ او په دې پوهېدل هم ډېر اړین دي هغه دا چې د کینې د بد ګنو په اوربدو سره کېدای شي تاسو ته دا پوښتنه راپیدا شي چې کینه خو کله نا کله په غیر اختیاري توګه هم راپیدا کېږي په ځانګړي ډول هغه مهال کله چې زمونږ هم عمره، هم سیاله او هم مسلکه

سړی وي او له مورږ څخه مخکې شي پر مختک وکړي نو مورږ له ځان سره وایو چې ښه دا خو له مورږ څخه مخکې شو. او بیا مو په زړه کې د هغه په اړه ډول ډول خبرې راپیدا شوې اوس خو نه مورږ د دې کار اراده درلوده او نه مو په زړه کې راګرځېده خو په غیر اختیاري ډول دا خیال راغی له دې څخه څنګه ځان وژغورو؟ له دې څخه د ځان ژغورلو لاره څه ده؟
ښه ځان پوه کړئ چې د کینې یوه مرتبه دا هم ده چې د سړي په زړه کې دا راوګرځي هغه پلانکی سړی چې له کوم نعمت څخه برخمن دی، له هغه څخه دې دا نعمت واخیستل شي خو له دې فکر سره سره د کینه ګر په زړه کې د هغه سړي په اړه بدګنې هم راګرځي.
د مثال په توګه په مجلس کې چې کینې د هغه بدګنې بیانوي او غیبت یې کوي، دا کار د دې لپاره کوي چې د خلکو په زړه کې چې د هغه سړي په اړه کوم رښتینولي راپیدا شوې ده هغه ووځي. یا د دې کوښښ کوي چې له هغه سړي څخه دا نعمت واخیستل شي دا کینه خو بیخي حرامه ده د دې په حراموالي کې هیڅ شک او شبه نشته دی.
خو ځینې وخت داسې وي نورو ته چې کوم نعمتونه ورکړل شوي وي د هغې له امله د بل سړي زړه ډېر غمجن وي او وایي ده ته ولې دا نعمت ورکړل شوی دی؟دا ډول کینه بیا له نورو کینو سره توپیر لري داسې چې لومړی سړی د هغه بل سړي نه غیبت کوي، نه یې بده وایي او نه یې بده غواړي بس یوازې دومره کوښښ کوي چې له هغه پلانکي سړي څخه دا نعمت واخیستل شي، زړه یې نه کرارېږي او تل وایي چې هغه ته دا نعمت ولې ورکړل شوی دی؟
په رښتیا سره دا هم کینه ده او ګناه لري خو د دې درملنه اسانه ده او له لرې پاملرنې سره له دې ګناه څخه ځان ژغورلی شو.

## سملاسي توبه وکړئ:

کله چې مو په زړه کې دغه ډول خبرې راپیدا شي نو ورسره ورسره دې خبرې ته هم فکر وکړئ چې دا کینه څومره بد شی دی او دا زموږ زړه کې چې کومه خبره د هغه سړي د نعمت په اړه راپیدا شوې ده دا هم ډېره بده ده، کله چې مو دغه ډول خیال په زړه کې راپیدا شو نو سملاسي توبه وباسئ او فکر وکړئ زه خپل نفس او شیطان غولولی یم دا زما لپاره ستر عیب دی. لنډه دا چې کله مو له کینې سره سره په زړه کې د کینې بدي هم راوګرځېده نو د کینې ګناه کمېږي ان شاء الله

## د هغه په حق کې دوعا وکړئ:

بزرګانو لیکلي دي چې کله مو په زړه کې د نورو خلکو نعمتونو په لیدلو سره کومه کینه راپیدا کېږي نو د دې یوه درملنه دا هم ده چې یوازې دې کښېني او له الله جل جلاله څخه دې د هغه په حق کې دوعا وکړي چې یا الله جل جلاله تا هغه انسان ته دا نعمت ورکړی دی نور یې هم ورزیات کړه. کله چې هغه سړی دا دوعا غواړي نو په زړه به یې سخته تمامه شي خو دا دوعا په زوره وکړئ چې یا الله جل جلاله هغه ته نور هم پرمختګ ورپه برخه کړې د هغه په نعمت کې نور هم برکت واچوې او له دې سره سره په خپل حق کې هم دا دعا وکړئ چې یا الله جل جلاله د دغه نعمت په اړه چې زما په زړه کې کومه کینه راپیدا کېږي په فضل او کرم سره یې له منځه یوسه لنډه دا چې دا درې کارونه وکړئ اول دا چې په زړه کې مو کومه کینه راپیدا شوې ده او د هغه د نعمت د زوال په اړه مو کوم خیال زړه کې راګرځېدلی دی له زړه نه یې بد وګڼئ. دویم دا چې د هغه نعمت په اړه د خیر دعا وکړئ. دریيم دا چې په خپل حق کې دعا وغواړئ چې یا

الله جل جلاله د غه کینه زما له زړه نه وباسه که له دې درې کارونو وروسته مو بیا هم په زړه کې کوم غیر اختیاري خیال راګرځي نو بیا به مو پرې الله جل جلاله نه نیسي. ان شاء الله
خو که په زړه کې مو خیال راګرځي او دغه خیال بد نه ګڼئ او نه یې د ورکاوي فکر کوئ او نه یې جبران کوئ نو په دې صورت کې دا کار له ګناه څخه خالي نه دی.

## د حق له منځه تللو سپیناوی:

دا مساله زه بیا بیا کوم چې د کومو ګناهونو اړیکه د الله جل جلاله سره ده مانا په هغه پورې اړه لري نو د دغو ګناهونو درملنه اسانه ده توبه وکړئ او دغه ګناه به مو وبښل شي. خو د کومو ګناهونو اړیکه چې له بنده ګانو سره تړلې ده هغه یوازې په توبې ویستلو سره نه بښل کېږي تر څو چې درته په خپله د حق څښتن بښنه ونه کړي او هغه مو ونه بښي یا مو تر څو د هغه حق نه وي پرځای کړی تر هغې نه بښل کېږي.
کینه داسې ده چې که په ژبه مو د دې نوم واخیسته او د دې کینې په پایله کې مو د هغه غیبت وکړ یا مو د هغه لپاره بد وغوښتل نو بیا د دا کینه په د بنده ګانو په حقوقو پورې اړه لري، نو تر څو چې مو هغه سړی ونه بښي دا ګناه نه بښل کېږي.
خو که کینه مو په زړه کې وي، او په ژبه مو د هغه نه غیبت کړی وي او نه مو د دغه نعمت د ورکاوي کوم عملي کار ته لاس نه وي پورې کړی نو په دغه وخت کې د دې کینې اړیکه له حقوق الله سره ده. د دغې ګناه بښنه پرته له دې چې له هغه سړي څخه وغوښتل شي نه بښل کېږي نو تر کومه چې کینه په زړه کې وي تر هغې پورې سړی پوهېږي چې خبره لا په ولکه

کې ده خو که له زړه راووتله او خولې ته راغله او عملي بڼه یې غوره کړه نو بیا یې مخنیوی ستونزمن کېږي او د بښلو هیڅ لاره یې نه وي

## د دین په کارونوکې رشک( مانا کاشکې زه هم داسې وی) کول ښه دي:

که د پرهېزګارۍ له امله مو په زړه کې دا راوګرځي چې کاشکې زه هم د پلانکي غوندې وی نو دا ښه خبره ده. همدارنګه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي:

لاحسد الا فی اثنتین رجل اتاه الله ما لا قسلط علی هلکته فی الحق ورجل اتاه الله الحکمة فهو یقضی بها ویعلمها. (صحیح بخاری کتاب العلم باب الاغتباط فی العلم والحکمة حدیث نمبر ۷۳)

په دې حدیث کې له کینې څخه مو خه رشک دی. مانا یو سړی دی چې الله جل جلاله ډېر مال دولت ورکړی دی او د الله جل جلاله په لاره کې یې لګوي او خپل اخرت پرې ښه کوي نو که اوس یو سړی ووایي چې که دهغه سړي غوندې مال دولت ماته هم الله جل جلاله راکړی وی نو ما به هم د الله جل جلاله په لاره کې لګولی وی په زړه کې دا ډول نیت ساتل په کینه کې نه راځي. لنډه دا چې د دین په کارونو کې کې مو په زړه کې دغه ډول فکر راګرځي نو دا په کینه کې نه راځي.

## د دنیا په کارونوکې رشک( مانا کاشکې زه هم داسې وی) کول ښه کار نه دی:

خو که د دنیا د مال دولت په اړه مو په زړه کې داسې راوګرځي چې له پلانکي سره ډېرې پیسې دي، پلانکي ډېر مشهور دی، د پلانکي خلک ډېر درناوی کوي نو دا ښه کار نه دی. ځکه چې له دې خبرو څخه بالاخره

حرص راپیدا کېږي او له حرص وروسته د کینه د راپیدا کېدلو هم اند ېښنه وي. که د غه ډول خبرې مو کله په زړه کې راو ګرځېدلې نو سملاسي داسې فکر وکړئ چې که هغه سړي ته الله جل جلاله دغه نعمتونه ورکړي دي نو ماته یې هم ډېر نعمتونه راکړي دي چې هغه ته یې نه دي ورکړي او کوم نعمتونه چې ماته نه دي راکړل شوي نو په دې کې به زما خیر وي کېدای شي الله جل جلاله د کوم مصلحت له مخې ماته دغه نعمت نه وي راکړی.

که چېرې یې هغه نعمت ماته راکړی وی نو کېدای شي زه په کوم ستر غم کې راګېر شوی وای. لنډه دا چې دغه ډول خبرې له خپل زړه څخه وباسئ. دا یو څو خبرې مې د کینې په اړه له تاسو سره شریکې کړې الله جل جلاله دې موږ او تاسو ټولو ته پر دې د پوهېدلو توفیق راکړي او له دې څخه دې الله جل جلاله موږ او تاسې وژغوري. امین

## د شیخ او پالونکي اړتیا:

لکه څرنګه چې ما بیا بیا وویل چې د باطن څومره ناروغۍ دي، د باطن څومره بد اخلاقۍ او ګناهونه دي له دې څخه د ژغورلو اصلي درملنه دا ده چې له کوم درملنه کوونکي سره وکتل شي. که چېرې یو ډاکټر ناروغ له ځان سره کینوي او نبه یې په دې پوه کړي چې تبه په حقیقت کې څه شی وي؟ لاملونه یې څه دي؟ درملنه او درمل یې کوم کوم دي؟ خو کله چې په دې سړي تبه راشي نو د ډاکټر هغه خبرې چې ده ته یې کړي د هغې په یادولو سره دی کولی شي چې خپله درملنه وکړي؟

معلومه خبره ده چې دغه سړی داسې نه شي کولی، ځکه چې حالات سره توپیر کوي او ځیني وخت درمل هم خپل خاصیت په ځینو حالتونو کې بدلوي او موږ یې په خپل سر نه شو کارولی مانا ډاکټر ته مراجعه کول

ارین وي همدارنګه دا د باطن ناروغۍ دي، د مثال په توګه ریاکاري، کینه، بغض، دوښمني، غرور، تاسو خو د دې په حقیقت وپوهېدلئ نو کله چې یو له تاسو څخه په دغه ډول ناروغیو اخته شو، باید داسې یو چاته مراجعه وکړي چې هغه خپله درملنه کړې وي او د نورو په درملنه کې ښه پوی وي. هغه ته ووایي چې زما په زړه کې دغه خبرې او وسوسې راپیدا کېږي زه څه وکړم؟ د دې څه درملنه ده؟ نو بیا ورته هغه سمه درملنه وړاندیز کوي.
خو کله نا کله داسې کېږي چې سړی ځان ناروغه کړي او ناروغه نه وي ځیني وخت داسې کېږي چې سړی ځان روغ احساسوي خو په رښتیا سره روغ نه وي بلکې ناروغ وي. ځیني وخت بیا داسې کېږي چې د یو سړي چې کومه درملنه وي هغه پرېږدي او بل پلو ته مخه کړي. نو بنیادي خبره دا ده چې باید یوه شېخ ته مراجعه وشي او هغه ته خپل ټول وضعیت وویل شي او هغه چې ورته کومه درملنه وښایي باید هماغه عملي شي.
الله جل جلاله دې موږ او تاسو ته په دې د عمل کولو توفیق راکړي. امین

د ژباړې پای
د یکشنبې شپه.
پوره اته بجې
د لیندۍ ۲۵ مه ۱۳۹۱ لمریز
اتحاد لیلیه خپله خونه

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ



- یوازې هغه عمل الله تعالی ته د منلو وړ دی، چې موخه مو ترې د هغه رضا وي، حضرت عمر رضي الله تعالی عنه څخه روایت دی، وایي رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي:

د انسانانو ټولې کړنې په نیت پورې تړلي دي او د نیتونو له مخې به هر انسان ته د خپلو کړو اعمالو خواره لاسته ورځي، کوم سړي چې د الله تعالی رضا او د هغه د پیغمبر صلی الله علیه وسلم د پیروۍ لپاره هجرت وکړ، نو الله تعالی به دده هجرت په خپل درکې ومني، خو که چا هجرت وکړ او موخه یې د الله تعالی رضا او د هغه د پیغمبر صلی الله علیه وسلم پیروي نه وه، یا یې مادي ګټو لپاره کړې وي، یا د کومې ښځې د نکاح کولو هجرت وکړي، دا نو د الله تعالی د رضا په خاطر نه دی د خپلو شخصي ګټو په خاطر یې کړی دی او د همدې بدله به ورسېږي [بخاري او مسلم].

وضاحت:

کومه ژباړه، چې مو د حدیث په اړه پورته وکړه، له هغې څخه د حدیث مانا ښه په ډاګه کېږي او تر دې نور وضاحت ته اړتیا نه

لري، خو موږ دلته ورسره څو کرښې نورې هم ورزیاتوو او د دې موضوع د لا روښانولو او ګټې اخیستلو لپاره پرې بحث کوو.

دغه حدیث مسلمانانو ته دا پیغام ورکوي، چې د هر ښه او بد، سولې، سلا، فساد او نورو ټولو کارونو سرچینه په نیت پورې تړلې ده او دا هرڅه چې څوک ترسره کوي، دا د دوی د نیتونو ښکارندوی دی.

مانا، نېک کارونو ته هغه وخت ښه ویلی شو، چې په حسن نیت او ښه نیت سره سرته ورسېږي او که کوم ښه کار هم د بد نیت له مخې وکړو، نو که هر څومره ګټور وي، حساب یې پر نیت کېږي، د ښه نیت لپاره یې نه دی کړی، ځکه ورته ښه نه شو ویلی.

لنډه دا چې الله تعالی زموږ په نیتونو، ظاهري او باطني ټولو کارونو باندې پوی دی، هغه سره زموږ د ټولو کارونو حساب شته او هغه ذات زموږ ټول کارونه نیت پورې تړلي بولي.

## ناسم پوهېدل:

ځینې خلک دا فکر ونه کړي، چې راځه خو دا ناسم او بې لارې کار دی، دا به په ښه نیت سره ترسره کړم، یا داسې وانګېرې، چې که څوک بد کارونه په ښه نیت سره وکړي، نو دغه بد کار به په ښه کار واوړي او دغه سړي ته به یې ثواب ورکړل شي.

د مثال په توګه یو سړی دی، له دې امله غلا او سوکې کوي، چې له غلا شویو روپو څخه به غریبانو سره مرستې وکړي، نو

دغه سړي ته ثواب ورکول کېږي

اصل خبره داده، کوم کارونه چې په خپل ذات کې بد دي، یا خراب دي او له کومو څخه چې الله تعالی او د هغه رسول منعه کړي، یو په هغې کارونو کې د ښه نیت لپاره بېخي سوال نه راپیدا کېږي، هیڅ امکان نه لري

په هر حال، هغه کارونه خو د الله تعالی له غضب څخه نه دي خوندي او د هغوی په کارونو او نیتونو د ښه سړیتوب او سپېڅلتیا ګومان کوي، دا د هغوی لپاره دویمه سزا ده، ځکه دا د الله تعالی له دین سره یو ډول ټوکې دي

له حدیث شریف څخه معتبره لاره نشته او دغه حدیث داسې وایي، چې ښه اعمال که په بد او ناوړه نیت سره ترسره شي، نو هغې ته بیا نیک اعمال یا ښې کړنې نه شو ویلی، لنډه دا چې کوم کارونه په بد نیت سره ترسره کېږي، پایله به یې هم بده وي

د مثال په توګه، یو انسان لمونځ ډېر په خشوع او خضوع سره کوي، ددې لپاره چې خلک ورته دینداره او پرهېزګاره ووایي او له دې امله یې خلک قدر وکړي، نو دې حدیث ته په کتو سره ویلی شو، چې له الله تعالی سره د دغه سړي د عبادت او لمانځه په اړه هیڅ قدر او ارزښت نشته، یا یو بل سړی دی، د کفر له هېواده د اسلام هېواد ته هجرت کوي، خو موخه یې له هجرت څخه د الله تعالی رضا نه، بلکې غواړي چې د هجرت په دغه نوي ځای کې له یوې مېرمنې سره واده وکړي، نو د داسې هجرت اجر او ثواب له الله تعالی سره نشته، بلکې جزا به یې هم ورکول

کېږي، دا د پورتني حدیث لنډه او ساده مانا ده.

- که یوه ستره کړنه له اخلاص او د الله تعالی رضا لپاره نه وي، نو تاسو به جهنم ته ورسوي.

په یو حدیث شریف کې راغلي دي، د قیامت په ورځ به د درې ډوله خلکو په اړه دوزخ ته د وراچولو پرېکړه وشي، تر ټولو د مخه به هغه سړی راوغوښتل شي، چې په جهاد کې شهید شوی وی، کله چې راوستل شي، نو الله تعالی به ورته خپل ټول هغه نعمتونه مخې ته کړي، چې په دنیا کې ورته ورکړل شوي ول، بیا به ترې الله تعالی پوښتنه وکړي، ووایه، تا د دغو نعمتونو حق پرځای کړی و؟ او څه دې وکړل؟ هغه به ورته په ځواب کې ووایي: ای خدایه! ما خو ستا په لاره کې جهاد وکړ او ستا د رضا لاسته راوړلو په خاطر مې خپل ځان قرباني کړ، الله تعالی به ورته وفرمایي: ته دروغ وایې، تا یوازې په دې خاطر جهاد کړی و، چې ته په زړورتیا مشهور شې او هماغسې وشول په دنیا کې ستا د زړورتیا نوم خپور شو، نو د الله تعالی په امر سره به په جهنم کې واچول شي.

همدارنګه یو دیني عالم او د قرآن کریم عالم به د الله تعالی عدالت ته راوغوښتل شي، الله تعالی به ترې پوښتنه وکړي، چې تا کوم کارونه کړي ول؟ هغه به ورته په ځواب کې ووایي، چې ای پروردګاره! ما ستا دین او ستا کتاب زده کړ او بیا مې خلکو ته وروښوده او دا هرڅه مې ستا د رضا په خاطر وکړل، الله تعالی به ورته وفرمایي، ته دروغ وایې، تا دا هرڅه د دې لپاره کړي ول، چې خلک در ته قاري، مولوي او عالم ووایي، بیا به د الله تعالی

په امر سره دا هم دوزخ ته وروغورځول شي

بیا به یو داسې سړی راوغوښتل شي، چې هغه ته الله تعالی د هر مال، جایداد ورکړی وي، له هغه به پوښتنه وشي، تا څه وکړل؟

هغه به په ځواب کې ورته ووایي، ای الله تعالی! ما د خیر ښېګڼې هیڅ داسې ځای نه و پرېښی، چې ستا د رضا لپاره مې ورسره مالي مرسته نه وي کړې، الله تعالی به ورته وفرمايي، ته دروغجن یې، تا دا هرڅه ددې لپاره کول، دا مال، دارایي، پیسې او هرڅه دې ځکه لګول، چې خلک درته سخي ووایي او ستا د سخاوت کیسې وکړي، بیا دغه سړی هم دوزخ ته وروغورځول شي. [مسلم]

الله تعالی دې موږ له نفاق، ریا او د نیتونو له فساده وژغوري. آمین

لنډه دا چې د الله تعالی پر وړاندې هغه کارونه د منلو وړ دي، چې په هغې کې مو نیت پاک وي، په دین کې د هېته اخلاص وايي.

## په قران شریف کې د اخلاصمندو او غیر اخلاصمندو یو مثال:

د قرآن کریم په لاندینیو دوه آیاتونو کې د دوه ډوله صدقه او خیرات ورکوونکو یادونه شوې ده، یو هغه خلک دي، چې د نوم او ځان ښودلو لپاره د رضا په خاطر د بېوزلو، غریبانو او فقیرانو سره مرستې کوي.

د دغو دواړو خلکو کارونه، چې موږ تاسو وینو، نو تو پیر یې

نه شو کولی او دا څرګنده خبره ده، چې زموږ سترګې د دوی ترمینځ قضاوت نه شي کولی، خو قرآن شریف بیا ددې دواړو په اړه وایي، دا چې د دوی نیتونه سره توپیر لري، نو څرګنده خبره ده، چې پایلې به یې هم سره ورته نه وي.

[كَالَّذِي يُنفِقُ مَالَهُ رِئَاءَ النَّاسِ وَلَا يُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ ۖ فَمَثَلُهُ كَمَثَلِ صَفْوَانٍ عَلَيْهِ تُرَابٌ فَأَصَابَهُ وَابِلٌ فَتَرَكَهُ صَلْدًا ۖ لَّا يَقْدِرُونَ عَلَىٰ شَيْءٍ مِّمَّا كَسَبُوا ۗ وَاللَّهُ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الْكَافِرِينَ ﴿٢٦٤﴾]

ژباړه: چې خپل مال محضې خلکو ته د ښودلو لپاره لګوي او نه یې پر خدای ایمان وي او نه یې پر آخرت، د هغه د لګښت مثال داسې دی، لکه یوه ښویه تیږه، چې دوړه پرې ناسته وي، کله چې جړې پرې وورېږي، ټوله دوړه ترې یوسي او تیږه هماغسې ښویه سوتره پاتې شي، دې خلکو چې په خپل ګومان سره د خیرات کومه نېکي ګټلې ده، له هغې نه هیڅ شی د هغو لاس ته نه ورځي او کافرانو ته سمه لاره ښودل د الله عادت نه دی.

[وَمَثَلُ الَّذِينَ يُنفِقُونَ أَمْوَالَهُمُ ابْتِغَاءَ مَرْضَاتِ اللَّهِ وَتَثْبِيتًا مِّنْ أَنفُسِهِمْ كَمَثَلِ جَنَّةٍ بِرَبْوَةٍ أَصَابَهَا وَابِلٌ فَآتَتْ أُكُلَهَا ضِعْفَيْنِ]

ژباړه: د دې پر خلاف، کوم خلک چې خپل مالونه یوازې د الله د خوشحالولو لپاره په ډاډه زړه او ثبات لګوي، د هغو د لګښت مثال داسې دی، لکه چې په کومه مځکه کې یو بڼ وي، که ښېبه باران پرې وورېږي، نو دوه چنده مېوې نیسي.

نو دا چې دواړو کسانو یو ډول نېک کار ترسره کړی دی، له

غریبانانو او بېوزلو سره یې مرستې کړې دي، خو د یو نیت یوازې د ځان ښودنې و، نو پر ته له دې چې په دنیا کې یې خلکو یوازې صفت کاوه، له دې پورته هیڅ په لاس ورنغلل او ده همدا غوښتل، چې خلک زما د دغه کار په اړه ښې تبصرې وکړي، خو دویم سړي دغه د خیر ښېګڼې او صدقې کار یوازې د الله تعالی د رضا لپاره کړی و، الله تعالی هغه په خپل پاک نیت سره وستایه او هغه ته یې هماغسې بدله هم ورکړه، لنډه دا چې دا هغه الهي قانون دی، چې رسول الله صلی الله علیه وسلم یې په یوه حدیث شریف کې په اړه داسې وایي:

په دې دنیا کې موږ یوازې د خلکو ظاهري کار ته ګورو او پرېکړې کوو، خو په آخرت کې ټولې پرېکړې د نیتونو له مخې کېږي.

دا دنیا چې موږ تاسو په کې ژوند کوو، زموږ د حواسو او درک کولو دایره د خلکو ظاهري خبرې او کارونو ته په کتو پورې محدوده ده، مانا دلته موږ د خلکو ظاهري کارونو ته په کتو سره د هغه د ښه او بد تمیز کولی شو او د همدې له مخې هغه سره چلند کوو، اړیکه ورسره ساتو، تر ظاهري کارونو وراخوا موږ د خلکو له زړونو، نیتونو او د سینو له رازونو نه یو خبر، ځکه حضرت عمر فاروق رضي الله تعالی عنه وفرمایل:

[نَحْنُ نَحْكُمُ بِالظَّاهِرِ وَاللهُ يَتَوَلَّى السَّرَائِرَ]

ژباړه: زموږ کار دا دی، چې ظاهر ته په کتو سره امر وکړو او پټ رازونه په الله تعالی پورې اړه لري، یوازې هغه پرې پوهېږي،

خو د قیامت په ورځ به الله تعالی د خپل علم الغیب له مخې د خلکو نیتونو او زړونو د ارادې له مخې پرېکړې کوي، لکه څرنګه چې په دې دنیا کې د خلکو ظاهري څېرې او اعمالو ته په کتو سره موږ پرېکړه کوو، د قیامت پر ورځ به دا خبره برعکس وي، هلته به الله تعالی د هغوی دننه زړه ته ګوري او ظاهري کارونه به له هماغو خلکو سره پرېږدي

## د دغه حدیث ځانګړی ارزښت:

دا حدیث د رسول الله صلی الله علیه وسلم له هغو هر اړخیزو، پراخه او ټول منلو لارښوونو څخه دی، سره له دې چې لنډ حدیث دی، خو د مانا او مفهوم له مخې په کې د دین یوه ستره برخه رانغښتې ده او د سمندر په کوزه کې مانا ترې اخیستل کېږي

تردې پورې چې ځینو امامانو ویلې دي، په دغه حدیث شریف کې د اسلام یوه بشپړه برخه راخیستل شوې ده او دا مبالغه نه ده، څکه کومه خبره چې دغو امامانو کړې ده، دا رښتیا ده، څکه د اصولو له مخې اسلام درې برخې لري، اول ایمان، دویم اعمال او دریم اخلاص دا چې په یاد حدیث شریف کې ټول بحث په اخلاص شوی دی، نو څکه ویلی شو، چې د اسلام یوه بشپړه برخه په کې راخیستل شوې ده، اخلاص یو داسې شی دی، چې زموږ د ورځني ژوند په هر ګام او هر کار کې اړین دی، په ځانګړي ډول، کله چې یو بنده د نېکو او ښو کارونو لړۍ پیل کړي، که علمي او یا عملي، نو پرته له اخلاصه یې سرته نه شي رسولی، څکه ډېرو سترو امامانو خپل کتابونه له همدې حدیث څخه پیل کړي دي، امام بخاري رحمه الله خپل کتاب (جامع

صحیح) او تر هغې وروسته بغوي خپل کتاب (مصابیح) له همدې حدیث شریف څخه پیل کړی دی، د حدیثو حافظ ابن مهدي وایي، هرڅوک که کوم دیني کتاب لیکي، نو ښه خبره دا ده، چې پیل یې په همدغه حدیث شریف سره وکړي، مخکې بیا وایي، که چېرې زه په خپله وغواړم، کتاب ولیکم، نو هر څپرکی به یې له همدې حدیث شریف څخه پیلوم. [فتح الباري]

{إِنَّمَا الأَعْمَالُ بِالنِّيَّاتِ، وَإِنَّمَا لِامْرِءٍ مَا نَوَى، فَمَنْ كَانَتْ هِجْرَتُهُ إِلَى اللهِ وَرَسُولِهِ فَهِجْرَتُهُ إِلَى اللهِ وَرَسُولِهِ، وَمَنْ كَانَتْ هِجْرَتُهُ لِدُنْيَا يُصِيبُهَا أَوِ امْرَأَةٍ يَتَزَوَّجُهَا فَهِجْرَتُهُ إِلَى مَا هَاجَرَ إِلَيْهِ}

ژباړه: د انسانانو ټولې کړنې په نیت پورې تړلې دي او د نیتونو له مخې به هر انسان ته د خپلو کړو اعمالو خواره لاسته ورځي، کوم سړي چې د الله تعالی رضا او د هغه د پیغمبر صلی الله علیه وسلم د پیروۍ لپاره هجرت وکړ، نو الله تعالی به دده هجرت په خپل درکې ومني، خو که چا هجرت وکړ او موخه یې د الله تعالی رضا او د هغه د پیغمبر صلی الله علیه وسلم پیروي نه وه، یا یې مادي ګټو لپاره کړي وي، یا د کومې ښځې د نکاح کولو هجرت وکړي، دا نو د الله تعالی د رضا په خاطر نه دی د خپلو شخصي ګټو په خاطر یې کړی دی او د همدې نیت بدله به ورسېږي [بخاري او مسلم].

## د حدیث شریف د ویلو اړتیا:

تردې حدیث وروسته رسول الله صلی الله علیه وسلم د لا ښه پوهېدا په خاطر د هجرت مثال راوړی دی، فرمایي، په دغه وخت کې مدینې منورې ته هجرت کول د هر مسلمان لپاره اړین و، ځکه چې په مکه معظمه او نورو کلیو کې له کافرانو سره د مسلمانانو شپې سختې شوې او مسلمانانو نه شول کولی له هغوی سره اسلامي ژوند تېر کړي.

هجرت کوونکو د دین د سرلوړۍ او په یوه پاک اسلامي چاپېریال کې د مسلمانانو په حیث د ژوند تېرولو لپاره خپل خوږ استوګنځی پرېښود او یوه پردي ځای ته ولاړل، هلته یې د هجرت ټولې سختۍ پر ځانونو ومنلې او دا هرڅه یې یوازې د الله تعالی د رضا لپاره وزغمل، په دغو هجرت کوونکو کې یو سړی داسې هم و، چې هغه یوې مېرمنې ته د نکاح کولو وړاندیز وکړ او دغه مېرمن په مدینه منوره کې اوسېده، هغه سړی بل ځای کې اوسېده، ښځې ورته په ځواب کې وویل، که ته مدینې منورې ته راشې، نو زه درسره نکاح کولی شم، هماغه و، چې دغه سړي هجرت وکړ او له هغې ښځې سره یې نکاح وکړه، نو صحابه کرامو به کله کله هغه ته د (قیس د لور) مهاجر وایه

له دې امله رسول الله صلی الله علیه وسلم په دغه حدیث شریف کې د هجرت یادونه او مثال راوړ، که نه په هرعمل کې نیت همداسې رول لري، که نیت چا د بد کار کړی وي، بد بهویني او که د ښه کار نیت یې کړی وي، ښه به ورکول کېږي.

## دا حديث درېيمه برخه علم دی:

حضرت امام شافعي رحمه الله او امام احمد رحمه الله وايي، چې دا حديث د ټول علم درېيمه برخه ده، ځکه چې انساني کړنې له درې شيانو څخه راووځي.

۱. زړه ۲. ژبه ۳.له نورو غړو څخه

او نيت زړه پورې تړلی دی او زړه پورې چې کوم اعمال تړلي وي، په همدې حديث کې يادونه شوې ده.

همدارنګه امام شافعي رحمه الله دا هم فرمايلي دي، چې دا حديث د فقې د يو ستر څپرکي ښکارندوی دی او علماوو دې حديث شريف ته د (ثلث الاسلام) درېيمه برخه اسلام لقب ورکړی دی.

حضرت امام ابو داود رحمه الله فرمايلي، چې دا حديث نيمه فقه ده.

د تېرې زمانې ټولو علماء کرامو خپل کتابونه له همدې حديث څخه پيل کړي دي، امام بخاري رحمه الله هم خپل کتاب په همدې حديث سره پيل کړی دی، همدارنګه مشکوة شريف کې هم له همدې حديث څخه پيل شوی دی، محدث عبد الرحمن بن مهدي رحمه الله فرمايي، هر ليکوال ته بويه، چې خپل کتاب له همدې حديث څخه پيل کړي

د عادت او عبادت تو پير په نيت سره کوو، يو عبادت له بل څخه د نيت په واسطه افضليت مومي، لکه څرنګه چې د نفلو او

فرضي لمونځونو تو پیر په نیت سره کېږي

که د عادت له مخې یو سړی خوراک، څښاک او کوروالی پرېږدي، نو روژه یې نه کېږي، ځکه چې د روژې د ثواب لپاره د روژې نیت ډېر اړین دی.

## شرعي هجرت او هېواد پرېښودنه:

نن سبا خلک یوازې هېواد پرېښودو ته هجرت وايي، که څه هم په نیت کې یې دا خبره نه وي، چې وطن د الله تعالی د رضا لپاره پرېږدم او که بل هېواد ته د تلو پر مهال که په لاره کې هر څومره روا ناروا وکړي، د ډېرو حقوق تر پښو لاندې کړي او هغه ځای ته په رسېدو سره که ډېر داسې کارونه وکړي، چې الله تعالی ترې منعه فرمایلې وي، سره له دې تولو بې لاریو به ورته هجرت وايي، خدای تعالی دې مونږ د نفس له فریبه وساتي، چېرته د صحابه کرامو رضوان الله علیهم هجرتونه او چېرته اوسني هېواد پرېښودل، چې حتا لمونځونه هم نه په کې ادا کېږي.

## د اخلاص اړتیا:

اخلاص ډېر مهم شی دی، ترڅو پورې چې مو نیت سپېڅلی نه وي او زړه کې مو دا نه وي، چې د دغه کار له ترسره کولو مې موخه د الله تعالی رضا ده، ترهغې هیڅ یو عمل ته بنایسته نه شو ویلی.

بزرګان وايي، که په یو کار کې مو یو نیت د دین وي او یو د دنیا بیا هم هغې کار ته اخلاص نه شو ویلی، لکه له روژې نیولو مو هدف دا وي، چې د ډوډۍ له پخولو به هم خلاص یم او د

ناروغی له املـه بـه یو ډول پرهېز هم یم، یا لـه حج کولو څخـه مو موخـه دا وي، چې یـو بهتـرین او الله تعـالی تـه خـوښ عبـادت دی، خو ورسره دې دا هم زړه کې وي، چې څه خو چکر بـه مې هم شي، سیل میل بـه هم وکړم، یا دې پـه اعتکـاف کې نیت دا وي، چې څه دا یـو ښـه عبـادت دی، ثـواب یې هم ډېر دی او یـو څـو ورځې بـه د کور لـه کرایـه هم خلاص یم، یا غریبانانو او بېوزلـو سره مې څکـه مرسـته وکړه، چې ثـواب هم لـري او خولـه یې هم بنـده شـوه، نـو دا ټـول خیـالات چې ستاسـو پـه زړه او ذهـن کـې راګرځـي، دا لـه اخلاصـه وتلي دي، څکـه چې د شـیطان مکـر او جـل ول مـو د دغې نعمت ترلاسه کولو ته نه پرېږدي.

رسـول الله صـلی الله علیـه وسـلم فرمـایي، چې کـه یـو څـوک پـه داسې حـال کې لـه دنیـا څخـه لاړه، چې یـوازې لـه الله تعـالی سـره یې د زړه لـه اخلاصـه مینـه درلـوده، لمـونځ یـې کـاوه او زکـات یـې ورکـاوه، نـو دغـه سړی پـه داسې حـال کې لـه دې دنیـا څخـه لاړه چې الله تعالی ورڅخه رضا دی.

لـه حضـرت ابـو فـراس رضـي الله تعـالی عنـه څخـه روایـت دی، چې وایـي یـو څلې لـه رسول الله صـلی الله علیـه وسـلم څخـه یـو سـړي پوښـتنه وکـړه، چـې ایمـان څـه شـی دی؟ رسـول الله صـلی الله علیـه وسلم ورته کړه، چې اخلاص... !!!

حضـرت معـاذ بـن جبـل رضـي الله تعـالی عنـه فرمـایي، کلـه چې رسـول الله صـلی الله علیـه وسـلم زه د یمـن د حـاکم پـه حیـث وټـاکلم او لېږلم یـې، نـو مـا رسـول الله صـلی الله علیـه وسـلم تـه کـړه، چې ماتـه نصـیحت وکـړه، رسـول الله صـلی الله علیـه وسـلم وفرمایـل، پـه خپـل

دین کې اخلاص کوه، نو ستا لږ عمل به د ډېر شمېرل کېږي

حضرت ثوبان رضي الله تعالی عنه فرمایي، چې رسول الله صلی الله علیه وسلم ویلي دي، اخلاص کوونکو ته زېری ورکوم، چې دوی د لارښوونې او سمې لارې ډیوې دي، چې له امله به یې هره توره شپه سبا شي.

حضرت سعد رضي الله تعالی عنه فرمایي، چې ما خپل خان له ځینو صحابه کرامو څخه لوړ وګاڼه، نو په دې وخت کې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل، چې الله تعالی له دې امت سره مرسته د ضعیفو او کمزورو خلکو د دعا، د هغوی د لمانځه او د هغوی د اخلاص له مخې کوي.

حضرت ابو امامه رضي الله تعالی عنه فرمایي، چې رسول الله صلی الله علیه وسلم ته یو سړی راغی او پوښتنه یې ترې وکړه، چې ای د الله تعالی پیغمبره! یو سړی جهاد کوي او غواړي، چې ثواب او شهرت دواړه ترلاسه کړي، نو څه باید وکړي؟ رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل، هیڅ دې نه کوي.

دغه سړي درې ځلې دا پوښتنه وکړه او رسول الله صلی الله علیه وسلم همدغه ځواب ورکړ، بیا رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل، بې له شکه الله تعالی هغه کار خوښوي او قبلوي، چې موخه ترې د الله تعالی رضا وي.

لنډه دا چې که څوک غواړي، چې ډېر ثواب وګټي، نو هغوی دې د ډېر اخلاص ساتلو کوښښ وکړي.

**د ځان ښودنې غندنه:**

له دې حقیقت څخه انکار نه شي کېدای، چې که د یوه سړي له یوه کار څخه موخه د الله تعالی رضا نه وي، نو خامخا به د دنیا اړوند کومه ګټه ورپورې تړلې وي، لکه شهرت، پیسې، جاه و جلال او داسې نور او له دې امله ښه کارونه کوي، چې له خلکو سره ناسته پاسته لري، ګوري راګوري ورسره، ترڅو هغوی یې وګوري، صفت یې وکړي، ښه ښه نومونه ورته واخلي، قدرداني یې وکړي او خلکو کې مشهور شي.

دا چې دا هرڅه سملاسي نغد لاسته راځي او د آخرت معامله قرض ده، په ډېرو حدیثونو کې ریا له شرک سره برابره ګڼل شوې ده، همدارنګه رسول الله صلی الله علیه وسلم په یوه حدیث کې ویلي دي:

زه پر تاسو ډارېږم، چې کوچنی شرک ونه کړئ، صحابه کرامو به ورته وویل، کوچنی شرک څه شی دی؟ ویې فرمایل، ځان ښودل.

حضرت شداد بن اوس رضي الله تعالی عنه فرمایي، چې ما له رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه اورېدلي دي، چا چې د ځان ښودنې او (ریا) لپاره لمونځ وکړ، هغه شرک وکړ، چا چې د ځان ښودنې لپاره روژه ونیوله، هغه شرک وکړ، چا چې د ځان ښودنې لپاره صدقه ورکړه، هغه شرک وکړ. [رواه احمد]

یو ځلې شداد بن اوس رضي الله تعالی عنه ژړل، چا ترې پوښتنه وکړه، ولې ژاړې؟ ویې ویل، یوه خبره رایاده شوه، چې له

پیغمبر صلی الله علیه وسلم څخه مې اورېدلي وه، هغې وژړولم

ما له رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه اورېدلي ول، زه د خپل امت په شرکت کولو او پټ شهرت باندې دارېږم

ما ترې وپوښتل، ای د الله تعالی پیغمبره آله تا وروسته به ستا امت شرک وکړي؟ ویې فرمایل: هو، بیا یې وویل، خبر او سئ، هغوی به لمر یا سپوږمۍ ته عبادت نه کوي او نه به د بت یا تیږې عبادت وکړي، خو په خپلو عملونو به دارېږي

او پټ شهرت دېته وايي، چې په دوی کې به یو سړی روژه ونیسي، بیا یې که کوم کار ته زړه شي، یا یې ذوق وشي، نو روژه به ورته پرېږدي [احمد و بیهقي]

په یوه حدیث شریف کې راغلي دي، چې الله تعالی فرمایي، کوم سړي چې داسې یو عمل وکړ، چې پرته له ما یې بل څوک هم په کې شریک وګاڼه، نو زه به دغه سړي سره دده له عمله پرېږدم، مانا د دغې عمل به هیڅ ثواب ورنه کړم

حضرت عمر رضي الله تعالی عنه یوه ورځ جومات ته راغی، ویې لیدل، چې معاذ بن جبل رضي الله تعالی عنه قبر ته ناست دی او ژاړي، پوښتنه یې ترې وکړه، ولې ژاړې؟ یو شی ما ژړوي، چې هغه مې له رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه اورېدلي دي، هغه مبارک به ویل، چې لږه ریا هم شرک دی او چا چې د خدای تعالی له دوست سره دښمني وکړه، داسې ده لکه له خدای تعالی سره چې د جنګ میدان ته راوځي

پرته له شک څخه الله تعالی هغه بنده ګان خوښوي، چې په پټه سره عبادت کوي، پرهېزګاروي او د ځان ښودنې لپاره تقوی او پرهېزګاري نه کوي.

دغه ډول خلک به له هر ډول مصیبتونو او تورتمونو څخه په امان وي. [مشکوۃ]

## د ریا کوونکو جزا د غم کوهی:

حضرت ابو هریره رضي الله تعالی عنه فرمایي، چې یو ځل رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل [جُبّ الحُزن] څخه ځان وساتئ.

ومو پوښتل: یا رسول الله صلی الله علیه وسلم [جُبّ الحُزن] څه شی دی؟

ویې فرمایل: په دوزخ کې یوه څاه ده، چې هره ورځ ترې دوزخ څلور سوه ځلې پناه غواړي، صحابه کرامو وپوښتل، دغه کوهی د چا لپاره دی؟

رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: د هغه عبادت کوونکي لپاره چې د ځان ښودلو لپاره ښه کارونه کوي [مشکوۃ]

## په دې دنیا ذلیل:

حضرت عبدالله ابن عمر رضي الله تعالی عنه وایي، رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل، کوم سړی چې خپل یو عمل مشهور کړي، خدای تعالی به هغه د خپل مخلوق په مجلسونو

کې په بدۍ مشهور کړي، ذليل او وبه يې شرموي [طبراني والبيهقي]

**ښه نيت:**

د ښه نيت په لرلو سره الله تعالی مسلمانانو ته داسې يوه ښه نسخه ور وښودله، چې په عملي کولو سره به يې هر مسلمان ته خاورو څخه سره زر جوړېږي.

ځينې خلک داسې فکر کوي، چې د ښه نيت په درلودلو سره ناسم کارونه هم سمېږي او له ګناه څخه ثواب جوړېږي، دا خبره خو بېخي ناسمه ده، ګناه خو په هر حالت کې ګناه ده، چې په هر څومره ښه نيت سره تر سره شي روانه ده.

د مثال په توګه يو څوک د چا له کور څخه په دې نيت غلا کوي، چې کوم شيان يا پيسې، چې له غلا څخه لاسته راځي، هغه به صدقه کړم، نو د دغې نيت له امله به يې د غلا ګناه ونه بښل شي.

د رسول الله صلی الله عليه وسلم له پورتنۍ خبرې څخه مطلب دا دی:

۱. په هيڅ يو نېک او ښه کار تر هغې ثواب نه ورکول کېږي، ترڅو چې په سم نيت سره تر سره نه شي.

د مثال په توګه، د لمانځه ثواب هغه وخت ډېر زيات شي، چې د الله تعالی د خوشحالولو لپاره وشي، که د ځان ښودنې لپاره لمونځ وشي، نو برعکس ګناه به يې د ثواب پر پرتله زياته وي.

۲. او دویم مطلب دا دی، کوم کارونه چې مباح یا جایز دي، اصلي حکم یې دا دی، چې په هغې نه ثواب شته او نه پرې عذاب، خو که دغه روا کالونه په سم نیت سره ترسره شي، نو په عبادت بدلېږي او ثواب هم پرې ورکول کېږي، د مثال په ډول: ډوډۍ خوراک له مباح کارونو څخه یو کار دی، خو که یو څوک ډوډۍ په دې نیت سره وخوري، چې له املـه به یې زما د وجود ځواک پیاوړی شي او بیا به د الله تعالی په لاره کې ترې کټـه واخلم، نو دغه ډوډۍ خوراک ثواب هم لري، یا یې په دې نیت سره وخوري، چې الله تعالی زما د نفس حق هم پر ما ایښی دی، نو د دې حق پرځای کولو لپاره ډوډۍ خورم، یا یې په دې نیت سره خوري خوند ترې واخلمه او له زړه نه د الله تعالی شکر وباسم، نو د داسې نیتونو په درلودلو سره ډوډۍ خوړل ثواب لري، لنډه دا چې ټول مباح کارونه که په ښه نیت سره ترسره شي، د ثواب لامل ګرځي، د ښه نیت یو څو مثالونه چې به ورځني ژوند کې مـوږ کولی شو، همدغه کارونه ثواب وګرځوو، په لاندې ډول دي.

- حلاله روزي پیدا کول د سوداګرۍ له لارې وي، د دندې له لارې، د کرنې یا بلې کومې لارې څخه وي، که چېرې په دې کې د انسان نیت دا وي، چې الله تعالی زما د خپل ځان او زما د کورنۍ روزۍ پیدا کول، پر ما فرض کړي دي، دا روزي ځکه پیدا کوم، چې د هغوی حق ور ادا کړم، نو د حلالې روزۍ دا ټول کارونه د عبادت او ثواب په څېر ګرځي.

بیا که چېرته دا نیت هم ولرو، چې کومې روپۍ چې د دغې کاروبار له لارې ګټم، اول به پرې د خپلې کورنۍ اړتیاوې پوره کوم او چې کله مې له کورنۍ هم زیاتې شوې، بیا به یې پر بېوزله

او غریبانانو ووېشم، یا به یې په نورو ښو کارونو ولګوم، نو د دغې نیت په درلودلو سره به لا ډېر ثواب وګټئ.

- که چېرې یو سړی زده کړې کوي، نیت یې دا وي، چې وروسته له لوړو زده کړو غواړم، د خپلو خلکو خدمت وکړم، که څوک دیني زده کړې کوي، نو خلکو ته د دین رسولو نیت وکړي، د طب زده کړیال دا نیت وکړي، چې د زده کړو تر بشپړېدا وروسته به د خپلو خلکو خدمت ته متې رابډ وهم.

انجینري، والا دغه پوهنځی په دې خاطر لولي، چې له دې لارې به د دې هېواد خدمت وکړم، یا څوک کوم بل هنر زده کوي، چې نور خلک به را خخه ګټه پورته کړي.

- انسان چې کوم کار هم د ځان لپاره خوښ کړي او په دې اره فکر وکړي، چې د روزۍ زمنه الله تعالی کړې ده، خامخا به یو کسب ډوډۍ راکوي، خو زه غواړم همدغه لاره وټاکم، څکه له همدې لارې د الله تعالی د مخلوق ښه خدمت کولی شم، نو دغه کار هم د اجر او ثواب لامل کېږي.

د مثال په توګه یو څوک ډاکتر کېږي، دا نیت وکړي، چې د پیسو ګټلو نورې ډېرې چارې هم وې، ما څکه ډاکتري ولوسته، چې له دې لارې د خلکو د خدمت مصدر وګرځم.

د مثال په ډول یو سړی د رخت دوکان لري، هغه دا کار و بار به دې نیت سره کوي، چې په شریعت کې ښه لباس اغوستل واجب دي، ډېرې نورې لارې هم وې، چې ما کولی شو له هغو لارو ډېرې پیسې وګټم، خو دا کار مې څکه وټاکه، چې د خلکو دغه واجب عمل سرته ورسوم.

همدا رنګه که یو څوک د نده په دې خاطر پرمخ وړي او هدف

يې دا وي، چې له دې لارې خپلو خلکو ته خدمت وکړم، که څه هم نو موړې دغه کار د پیسو په مقابل کې کوي، خو ثواب به د نیت ورکول کېږي.

- ښه لباس (کالي) ددې په خاطر اغوندم، چې الله تعالی ماته کوم نعمتونه راکړي، ښکاره يې کړم او لیدونکي يې وګوري، ددې لپاره مې نه دي اغوستي، چې یا ماته ستر سرمایه لرونکی ووايي او یا داسې فکر وکړي، چې هغوی ما په لویو کسانو کې حساب کړي.

- له خپلو بچیانو سره په دې خاطر مینه کوم، چې رسول الله صلی الله علیه وسلم له ماشومانو سره مینه کوله.

- د کور په کارونو کې ددې په خاطر له مېرمنې سره مرسته کوم، چې رسول الله صلی الله علیه وسلم به کله د وخته کورته راغی، نو د کور په کارونو کې به يې له خپلې کورنۍ سره مرسته کوله.

- له مېرمنې او بچیانو سره ددې په خاطر خوش طبیعي کوم، چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي، چې له دوی سره په ښه خوله خبرې وکړئ او ښه چلند ورسره وکړئ.

- په کور کې مې بوټی یا ونه په دې خاطر کرمه، چې انسان یا ځاروی به ترې ګټه پورته کړي او لیدونکو ته دا منظره ښکلې ښکاره شي.

- خپل لیکلي فایلونه په دغه خاطر ښکلي کوم، چې لوستونکي ترې خوند واخلي.

- ښځه دې په دې خاطر په ځان ګوتې وهي او سينګار دې کوي، چې خاوند يې خوشحاله شي او نارينه په دې خاطر پاک

سوتره وکړځي، چې په ليدو يې مېړمن هم خوشحاله شي
- ساعت ددې لپاره په لاس کوم، چې د لمانځه وختونه پرې کورم او د وخت قدر په پېژندلو کې به راسره همکاري وکړي
لنډه دا چې دا يو څو مثالونه ول، که نه نو امام غزالي رحمه الله په خپل کتاب (احياء العلوم) کې ويلي، په دنيا کې هيڅ يو داسې کار نه شته، چې مونږ ورسره ښه نيت ملګرى کړو او مخ پر وړاندې لاړ شو.
ترې دې پورې چې که ښځه او خاوند ددې په خاطر يو له بل څخه خوند واخلي، چې يو د بل حق ادا کوي، او له دې کار سره به د دواړو په لمنه تور داغ نه وي، بلکې دغه کارونه به يې ثواب ګڼل کېږي

پاى

۳/۹/۱۳۹۳ قوس

جلال آباد خپل کور

وخت ۱۱ بجې، ۲۴ دقيقې